


<u>د کتاب ځانګړني:</u>


- **د کتاب نوم :: انسان داسلام په دایره کښې**
- **لیکوال :: استاد نوراحمد قرآن مل**
- **خپرندوی :: غریبک کتابتون «کندهار»**
- **دچاپ کال :: ۱۳۹۳ لمریز کال**
- **چاپي لګښت :: انجنیرننګیالی کاکړ**
- **اړیکه noorahmad_kakar@yahoo.com**

# اهداء

دبشریت هغه محترم ستر ناجي ﷺ ته چي الهي اُمورات یې سل په سلو کي پر ځان پلي کړي دي.

قرآن مل

عمومي هدف :

**ترڅو دهمدې ليکنې په لړ کي دبشر پالني اساسات څرگند سي .**

خصوصي هدف :

**دقران کريم دنصوصو په لړ کي انساني جسمي ،جنسي او ټولنيز تکامل روښانه سي .**

## د(( انسان )) کلمه

**د انسان کلمه د(انس)له فرده څخه جمع سوې کلمه ده .**

ولي انسان په دې کلمه ونومول سو ؟

**پردې بنسټ دانسـان دوجود نوم په دې کلمه نومول سـوی دی اســم يې پـه لفظي او مفهومي ډول دترکيـب يوه مجموعـه تشــکيلوي ،ولي د(انســونو)داتجمع دگرامر په مصــدر واله سره دواحد اسم مفهوم ورکوي،ځکه نو هر انسان ته انسونه ـــــــــــ نه ،بلکي انسان وايو .**

**لغوي مفهوم يې دمعني پر دوه ډوله تعبير کېدای سي :**

**پـه يوه ډول کي (انس )دالفـت، ميني او محبـت ((تړولن شمول))په معني په دوهم ډول د نسيان ((هيري)) په معني.**

**دانسان وجود دهغه په بيولوژيکي اساساتو کي**

**دانســـاني وجود دپيدا کېدني په اړوند کېدای سي الله ﷻ له انســانه پوښــتنه وکړي چي څه ډول پيدا ســواســت ؟ کله چي انســـان دې ســـوال ته بې جوابه پاته کېږي ،نو الله ﷻمخکي له مخکي په قرانکريم کي دې ســـوال ته همدا قانع کوونکی ارشـــاد**

**فرمايلی دی : يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ[1]**

**ژباړه : اې خلگو كه تر مرگ وروسته پر بيا ژوند مو څه شک وي له بيا راپورته كولو نوبايد پوه سئ چي تاسي مو له خاوري پيدا كړي ياست ، بيا له نطفې ، بيا لهويني له يوې ټوټې ، بيا دغوښي له يوه بوټي چي روغ بدن ځيني جوړ سوئ وي او بيا بشپړ بدن ځيني جوړ سوی وي ، ترڅو خپل قدرت او حكمت روښانه كړو او چي زموږ خوښه سي نو په رِحمونو كي ځيني نطفې تر ټاكلې مودې پوري ساتو بيا كوچنئ را باسو ، بيا مو پالو تر څو چي بشپړه ځوانی ته رسېږی ، ځيني مړه كېږي ، ځيني مو ، دناكاره عمر خواته ځي چي پر هرڅه تر پوهېدولو وروسته بيا په هيڅ ونه پوهېږی او نه گورئ چي مځكه وچه كلكه وي كله چي موږ اوبه پر**

[1] الحج سورت ٥ايت

ې خپرې کړو نونابېره وخوربېږي اوهرډول ښــکلي او تازه بوټي پر راشنه سي .

په پورته ايت کريمه مبارک کي ځو حکمته په لاندي ډول واضح دي :

١: په رواني ډول :

- دانســان په رواني يا psychological اړخ کي په طفوليتي ډول دژوندانه په لمړي سر کي عاجز او د نورو لاربښوونو ، پرورونښت او روزني ته اړ تيا پيدا کوي .
- په پوخوالي يا زړښــت کي دضــعف پر لور ځي او بيا په څه نه پوهېږي .او دلاسنيوي مستحق وي
- ددې دواړو تر منځ دځوانۍ مرحلـه چي پـه جســـمي ډول دپياوړتيا دوره ده ور سره مل فکراً دحس ، جذب ، درک او فعاليت توان ډېر ښه لري .

انســـان بايد دطفيلي حالت څخه دځوانۍ پړاو ته په رارســـېدو سره پياوړئ ، ثابت قدمه ، مثبت ، مُصــمَم او حليم واوسي او کله چي دضـعف حالت ته رسـېږي الله ﷻدنومړي دځوانۍ دپړاو دمرحلې درجوع پـه دوام د هغـه دضـــعف

څرگندونه په رواني او عملي ډول څرگندوي او نورو ته دمجرب او ښه لارښود په توگه ښکاره او بیانوي .

۲:- دپیدا کېدني ډول:

مځکه دخاکي کُرې غټه کتله ده ، نور ټول مواد چې پر مخ یې دي تر مځکې لږ دي پر همدې بنسټ دمځکې پرمخ ټول سته ((جُز)) او خاوره یا دمځکي کُره یې ((کل)) دی ،ځکه نو دانساني وجود مبدا په جسماني ډول خاورو ته منسوبه ده پر دې اساس چې انساني وجود په تناسلي ډول پښت پر پښت له ادم (علیه السلام)را پیل دی ، چې په لمړي پیدایښت کي د ملایکو په عملیه دهغه په وجود کي دختې اخښنه بل څرگند سند بللای سو . الله ﷻ په دې اړوند فرمایي :الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنْسَانِ مِنْ طِينٍ[۲]

ژباړه : هغه چې هرڅه یې پیدا کړي ښه کره یې پیدا کړي او شروع کړئ یې پیدایښت دانسان له ختې څخه .

۳: - دپرورونښت په اړخ کي :

---

[۲] سورت السجده ٦ایت

الله ﷻ په پورته ياد سوي ايت کريمه مبارک کي په څرگند ډول واضح کړي دي چي ډول يې دوجود نقش شېبه په شېبه دهغه جوړښت څخه په څه ډول له يوه حالته وبل حالت ته اړوي ، له زوکړې څخه دصفر په لمړي حالت کي وبه گورو چي الله ﷻ په څه ډول دکوچني له پاره دهغه دمور په وجود (( ځگر)) کي شيدې ور پيدا کوي او بيا په هغه شېدو څه ډول کوچنئ له صفره تر ټاکلي دوه کلنئ پوري تغذيه کوي ، بيا دطبيعت په غېږه کي روا خوراکي اومنظمو خوړو څخه تغذيه او ځان مړه وي کوي .

انسان دې ته متوجه کوي چي دطفوليت او صغارت له پړاونو له څخه تر مړيني پوري په عملي او علمي ساحه کي بشپړ نه دی ،ځکه نو اړ دی چي گام پر گام ، شېبه په شېبه دپوهي په لټه واوسي او په دې سره درې لاندي لاسته راوړني ولري :

الف:عقيده :

انسان مسئول دی چي دمشروع او اسماني وروستي دين په ټولو اصولو مذهباً ځان پوه کړي .

ب : ټولنه :

دورځنيو اړتياوو په نظر کي نيونه سره داجتماعي علومو په برخه کي دټولني سره دتماس په موخه دزده کړي په لټه واوسي او په مثبت اړخ کي دټولني دمثبت بدلون په رامنځته کېدو کي ونډه ولري او په منفي اړخ کي دټولني دبدلاری مخه ونيسي .

ج : ساينس:

په منظم او سيستماتيک ډول دساينسيـ جهان د علومو دمطالعې او زده کړي په لټه او څار سي او د الهي ارشاداتو په رڼا کي هراړخيز مثبت پرمختگ په اړوندعامل و اوسي.

دال: بيلوژيکي جوړښت:

کله چي يې بيولوژيکي اړخونه تر څېړنو لاندي نيول کېږي دجوړسلسله يې بابېزه خبره نه ده،بلکي په تدريجي ډول دجسمي تکامل دپړاونو دعروج او زوال، بيا دعروج لړۍ دالهي کلام په نصوصو کي داسي څرگنده ده :

الله ﷻ فرمايي:

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ (١٢) ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ (١٣) ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ (١٤) ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ (١٥) ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ (١٦) [٣]

ژباړه : او په تحقيق سره کړ موږ او موږ انسان له سريښناکي ختې څخه جوړ کړبيا په خوندي ځاى کي مو داوبو يو څاڅکی وګر ځاوه ، بيا داوبو له څاڅکي دويني ټوټه جوړه کړه ،نو بيا دويني له ټوټې څخه دغوښـو يو بوټئ جوړ کړ او بيا دغوښـي له بوټي څخه هډوکئ جوړ کړ ، او بيا مو هډوکو ته غوښه ور وپوښـله او بيا مو هغه په يوه بل پيدا ينبت سره ژوندى پيدا کړ ، الله ﷻ د ډېر لوړ شـان خاوند او تر ټولو ښه پيدا کوونکی دی ، بيا تاسي تر دې وروسته هرو مرو مړه کېدونکي ياست او بيا دقيامت په ورځ بېله شکه به را پورته کړای سی .

دپورته ايت کريمه په مصداق دمعاصرو ساينسي اکتشافاتو لاندي ثبوتونه لرو ،چي په ټاکلي ځاى کي دانسـاني وجود داوبو

[٣]المومنون سورت ١٢-١٦ايتونه

ايښــېدني او بيا په تدريج سره دهغه بدلون او غتېدنه لاندي موارد په لاس راکوي :

الف : په جســمي ډول دانســان وجود له نيســت څخه دپلار په ((ســـپرم)) اود مور په ((اووم)) اوړي بيا ددې دواړو ديو ځـاى کېـدو پـه پـايلـه کي دمور پـه نس کي د زايگوت جوړښـــت اختياروي ،وروســـته په تورو اوبو او بيا په غوښـــه اووښـــتون وروســـته دهډوکو او پلو جوړښـــت بيا پر هغوئ دعضلاتوجوړښت راښيي

بلې !

په ســـاينس کي موږ دمعاصري ټکنالوژۍ په پايله کي دانســاني جســم په پيلامه کي د((ســپرم، اووم او زايگوټ )) له اصـــلاحاتو سره مخ ســـوو او داسي انگيرو چي گواکي دا ده غربي علماؤ ساينسيـ اكتشـاف دى ، حال داچي ١٤٤٨ كاله مخکي مځکي ته له اســمانه دقرانکريم نزول داڅرگندوي وي: فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ [٤]

[٤] سورت القيامه ٣٩ ايت

ژباړه : نو ويې گر ځاوه له هغه جوړه ((نر او ښـــځه))
إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَـــانَ مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَـــاجٍ نَبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيراً[٥]

ژباړه :موږ انسان له گډو سوو((خلط))سوواوبوڅخه پیدا کړ،موږ هغه ازمایو نو ومو گرځاوه هغه اوریدونکئ لیدونکئ .

چې دپورته ایتونو په ذکر کولو سره دهغه د پیدایښـــت مبدا يې په اصلي معیار او توصیف بیان کړیدي .

ب : له ((طفولیت او صـــغارت)) نانې والي او کوچنیوالي څخه نیولې تر ((شـــبابیت ، شـــېبانیت او شـــیخوخیت)) ځوانی، پوخوالي، زوړ والي او مړینـي پوري چې دژونـد پر مبنـه يې دمسئولیت کتاب کتېږي تکامل را ښوولی دی.

ج: دبیا را ژوندي کېدو تر دایمي پړاو یې دبیا ژوند په هیله اخرت ته دهغه مختص کېدل لکه الله ﷻ چې فرمایي:وَ سَلَامٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا[٦]

---

[٥] سورت الانسان ٢ ایت

[٦] دمریم سورت ١٥ایت

ژباړه :او سلام دي وي پر هغه ورځ چي پيدا سو او هغه ورځ چي مړ به سي او هغه ورځ چي را پورته به سي ژوندی

دپورته موضـوع دوام موږ ته دا را په نخښــه کوي چي پورته دالمؤمنون سـورت ۱۲ــــ۱٦ایتونه موږ ته دبیولوژی دسـاینسيـ تحقیق د درو گونو خواصو (( دپربښت، وده او خوځښت )) مبدا هم ثاکي او دا روښـانه کوي چي اصـلاً وده ، دپربښـت او خوځښـت په لمړي ځل په دبیولوژیکي پلټونو په لړ کي نه ، بلکي په قرانکریم کي څرگند دي :

➢ پیدایښــت : له نیســته دڅخه هســت او بیا له هستیه څخه دانسان نیستي کېدل کیمیایي دا فورمول روښانه کوي چي انســـان څه ډول دمځکي پر مخ یو ځل داللهﷻ په اراده را پیدا سي بیا نه را پیدا کېږي . په همدې توســن کله چي نه وي زوکړئ په فضـــا کي يې ځای نه وي نیولی او کله چي وزوکېږي، نو بیا دمځکي پر مخ په ویښــو او بیدو سره په فضـــا کي وزن ، کتله او حجم پیدا کړي او ور سره تر څنگ د ژوند کړه وړه په افاقي او سطري ډول تر سره کوي.

➢ خوځښت : د غره دډبري ، ددښت د نمکسار او بې انرژۍ ((تېلو اونفتو)) ماشين غوندي انسان نه دی چي د يوه مړه جسم غوندي بل محرک ته اړتيا پيدا کړي ، بلکې الله ﷻ فطرتاً داسې جوړ کړي چي ترمرګه يې په وجود کي ساه چونيږي بايد حرکت وکړي .

➢ لويښت : دا په ځرګنده سي چي په فرضي ډول د زوکړي پر مهال دانساني جسم وزن له kg۲ څخه زيات او کله چي ځوانيږي تدريجاً تر kg۵۰بيا تر هغه لوړ ثابت او کله د زړښت په پولو کي را کښته کيږي چي په دې سره دا روښانه ده، چي د انساني فکري جوړښت د محدود کېدو تر څنګ يې جسمي تکامل هم دضعف پر لور په کوچ کي دی .

➢ ډېرښت : اوسنۍ انساني احصائيه population ددې ځرګندويه ده چي مخکي حالت يې په لږوالی او راتلونکی حالت يې د ډېروالي پر لور درومي او په دې سره دمخکني حالت په څېړنه چي څومره دشاپر لور ژور څېړل کيږي هغومره انساني تعدد دکمي خواته د رومي او د سر پايله ديوه نفر چي ادم (عليه السلام)دی ور ته دريږي وګورئ

اوسنۍ وضعيت + شاته + شاته +شاته +دادم دوره

٠،١،٢،٣،٤،٥،٦،٧،٨،٩،١٠،١١،١٢،١٣

د انساني دې ډېرښت له پاره تر ادم (عليه السلام)وروسته د الله ﷻ په اراده جسماً دوه انساني موجوده په وجود را غلل چي په فزيكي او جسمئ ډول سره متضاد او په فطري ډول يو شانته جوړه قشرونه دي ((نر او ښځه)) ددې دواړو متضادو جوړښتونو په پايله كي په انسان كي فزيكي ساكن حالت ساكت او او دمثبت او منفي چارج په لرلو يو له بله سره په اصولي چوكاټ كي را جوړه ـــ جوړه سول ، الله (ﷻ) فرمايي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيراً وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا [٧]

ژباړه : اې خلگو ستاسي له خدايه وبېرېږي هغه ذات چي تاسي يې له يوه نفس څخه پيدا كړاست او پيدا كړاست له نفس څخه جوړه او خپاره يې كړل له دواړو څخه نارينه ډېر او ښځينه ، وبيرېږي له هغه ذاته څخه چي پوښتنه كوي يو له بله څخه په هغه ، او وبېرېږي له خپلوی څخه بېله شكه الله جل جلاله پرتاسي ساتونكی دی .

[٧] النساء سورت ١ايت

د الله (ﷻ) د ارادې په لړکي انســـاني متضـــاد تعامل (جماع) ددې منتج سوه چي نسلونه نسلونه او نسبونه را وزېږي.

الله ﷻ له يوه حالته وبل حالت ته دانســان اووښــتون په يوه اړخ کي دحرکت ، او په بل اړخ کي دحجرو دتکثر ورکولو داســـند پــه لاس راکوي چي دانســـاني وجود دتکـامـل او تنزل پړاوونـه دقرانکريم په نصوصو کي په پوره وضاحت سره دانسان دپوهولو له پاره را نازل او دبشريت رهبر رسول الله ﷺ په يادو تنازلاتو سره د نړۍ تر ټولو خلگو ښــه پوه ســوئ وو او هغه ته يې داسي يو منزل ديوه بشــپړ انســان په توگه ور کړی ،چي په انســاني نړۍ کي کوم ســارئ نه لري . دانســاني وجود جوړ چي له ميلياردونو حجرو څخه يې تراکب صــورت لري د الله ﷻ دقدرت يوه شــهکاره او بې مثاله نمونه بلل کېږي .

دهمدې انســـان دزوکړي په طفيل بيا له خپل وجود څخه بېل بل درنښــت هم الله ﷻ انســان ته ور کړی دی ددوو انســانانو مشرــوع اړيکي يو او بل ته دپالني په پايله کي درېيم انســـان ور څخه زېږي چي دا پخپله دبشر پالني يوه روښانه بېلگه ده چي دوه تنـه يو لـه بـل سره پـالي او ددې پـالني دپـاکي ميني پـه لړ کي دپاکي ميني محصول ((اولاد )) ور سره اضافه سي .

**پایله:**

د بیولوژیکي، کېمیایي او فزیکي جوړښـتونو دلنډ تحلیل په پـایلـه کي دې خبري تـه رســېږو چي پـه فردي اړخ کي دکثیر الحجروي حیوان په توګه داد انســـان دمختلفو حجرو او نســـجونو تراکب او په ټولنیز ډېرښـت یا population په اسـاس له محدودو انسانانو څخه د نورو زوکړه دا تیوري را کوي چي بشر یعني انسان د څو اړخیزتکثر درلودونکی دی چي قرانکریم یې تائیداو وضاحت په موخه ابتدا او انتها سـترماخذ دی.ددې دواړو متضـادو قشرـونو جسمي ، رواني او حقوقي توپیرونه په لاندي ډول روښانه کېږي .

**مساوات او اعتدال**

غربي مفکرین او د هغوئ پیروان د مســـاواتو او اعتدال تر منځ توپیر نه مني او د انســـاني اجســـامو پر توپیر باور نه لري او یایي نه سره بېلوي ښـــایي یابه غلط فهمي کوي، سره تر دې د ساینسي دا اکتشاف او انکشاف پر مختللې ادعا هم دوئ کوي په فزیکي ،کاري او حقوقي اړخونو کي نر او ښـځه یو شـانته بولي ، ولي خبره داسي نه ده دوئ روحي او نفسي ډول دخلقت په لمړي ځل کي یو شـــانته پیدا ســـوي دي ، بیا هماغه روحي او نفسيـــ

خلقت يې په فردي ډول كالبوتونو ته ور ننوتي دى ، دوه متضـــاد وجوده سـوي دي .ددې دواړ و دا تضـاديت، داعتدال او مساواتو تر منځ په لنډو وضاحتونو ولولى :

<u>مساوات :</u> هغه دوه مجاور هندسي خطونه، هغه دوه گاونډي طرزونه، هغه څنگ پر څنگ جســمي او روحي هدفونه چي په موازي ډول دخپل سر تر وروستى نقطې پوري رسوي ؛په پاى كي په برابر ډول دربدل يې د مســاواتو مفهوم په لاس را كوي يا په بله معني سره برابرېږي ، كله چي يو له بله پاته كېږي او يا دواړه ويوه حالت ته ځان نه سي رسولاى په دې صـورت سره مساوات صـورت نه نيسي د انسانانو دواړه متضاد اصلونه هم يو شانته نه دي .

پر دې بنسټ د نارينه او ښځينه جسمي توپيرونه سته ددې توپيرونو له امله دوئ هيڅكله سره مســـاوي كېدلاى نه سي او پر دنيا له عقله ليري خبره ده د سارو په ډول :

●نارينه دښـځينه په پرتله جگ قده وي، خو كله كله داسي وي چي ښـــځي ترنـارينـووجگـي وي ولـي ډيرو ســــاينسيــ تحقيقاتوښوولې چي نارينه هډوځو سانتى ترښځي جگ دى .

●دنياينه په پرتله دښځي حافظه كمه ده .

●هغه انسانان چې د اسماني دينونو پيروان وي په يوه سلا دا مني چې په ښځينؤ کې تر اوسه پورې څوک د الله ﷻ له لورې په پيغمبرۍ نه دي مبعوث سوي .

●نارينه کروړ ، ګړ ، حشمت او وقار لرونکی وي .

●ښځه جسماً ، لطيفه ، نرمه ، جذابه ، او مرغوبه وي .

●نارينه که تر ټاکلې عورت دباندې دبدن کوم ساحه لڅه پرېږدي د نورو کسانو تر ډېره کومه توجه نه راجلبوي.

●ښځينه که معمولي بې ستري وکړي دسيمې او ټولنې د بدلارۍ سبب ګرځي .

●ښځينه که د جګړې په ډګر کې برخه اخلې کار يې يوازې د جنګياليو پالنه وي .

●نارينه د جګړې دليکې رهبري کوي او قومنده ور کوي .

●نارينه په خاصه پيروزينه سره دمياشتنۍ استحاضې مريضۍ خلاص دی .

●ښځينه تر مياشتنې عادت سر ببېره تر ولادت وروسته ٤٠ ورځې د پاکۍ په اميد له بدنه جاري وينه لري .

●نارينه دسپرم په خروج سره يوازې توليد کوي .او بېله سپرم دجوړښت څخه دهغه د پرورښت په اړوند نوره عمليه سرته نه سي رسولای .

●ښـــځينـه توليـد او تولُـد دواړه كوي، هم خپـل ((اووم)) جوړوي ، هم دنارينه سپرم په ((قرارمكين)) ټاكلي ځاى كي ساتي او پخپل بدن كي دبل انسان دتدريجي جوړښت قابليت لري .

●نارينه رهبري كوونكى ، څارونكى اوتنظيموونكى دى .

●ښځينه پالونكي ، ساتونكې ده .

●نارينه اســـتقامت لرونكى،كلك هوډ لرونكى او كلك زړۀ وي

●ښځينه مهربانه ، شكست منونكې او عاجزه وي .

په ســلگونو نور ډېر ســاري ســته چي د اســتدلا ل دحقيقت مونـدني لـه پاره پـه نخښـــه سي . بس به وي ، نو بـايد ووايو چي ښځينه او نارينه هيڅكله په مساوي حالت كي جسماً قرار نه سي پيدا كولاى ،ځكه نو دمادي مفاداتو دتر لاســه كولو له پاره دبشرـــ دحقوقو په عنوان ښځي يوازي دجنسيې غريزي دسړولو ، دعايداتو دزياتولو لـه پـاره دتجـارت ، Business آلې او دنـارينـه د طبيعت راســته كولو له پاره دنڅا نانځكي ((ناوكى)) ونه گرځي ، قرانكريم د هغو بدمرغو په اړوند بيانوي چي د ښـــځينه وقار ته په ســـپكه گوري او هغوئ د فحشـــا پر لور ماتوي : إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ

**عُصْبَةٌ مِنْكُمْ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَكُمْ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَكُمْ لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ مَا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ وَالَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ** [8]

**ژباړه : بېله شکه هغه کسان چي خوښوي هغوئ بدکاره او بده خبره په هغو کسانو کي ايمان يې راوړی وي له پاره دهغوئ عذاب دردناک په دنيا او اخرت کي او الله ښه پوهېږي او تاسي نه پوهېږئ .**

**بلکي هغوئ ته دهغوئ دخاصو امتيازونو په ور کړه چي الله ﷻ ور کړي دي اصولاً په درنښت وکتل سي د يوه حيوان په توګه نه ،بلکي د انساني جامعې د نيمي قشر۔ او نارينه ته د يوه سيال جنس په توګه يې درناوی سي .**

**ددې په عوض چي د يوې آلې په توګه وکارول سي دفطرت ديوه ښه استازي په توګه بايد احترام ورته وکړل سي ، پر خپل ځای مور ، خور ، خورځه ، وروېره ، خانمه ، محرمه او نامحرمه وبلل سي او هغه امتيازات ور کول سي چي الله ﷻ دالهي نظام دپلي کېدو په رڼا کي مخکي له مخي ور ته ټاکلي دي .**

---

[8] سورت النور

اعتدال : اعتدال د کمیت په پرتله د کیفیت برابري څیړي.
دبرابری په مفهوم دی دا په هغه صورت کښي دپلي کېدو وړ دی چي دانساني ټولني د نر او ښځي داساسي حقوقو د نفي کېدو وېره وي ، اعتدال د بشري وجود شان لري ،کله چي دبدن یو غړئ ناقراره کېږي ټول بدن ورسره ناقرار وي د یوه غړي په دردېدو سره د ټول بدن تبه سي . همدا شان د بشر په وجود کي یو خوږ را منځته کېږي په هغه صورت کي دا نارینه وي که ښځینه وي خوږ یې یو خوږ دی ، د درد احساس یې یو دی ، دواړه ددرد درفع کولو له پاره روحاني علاج کوي ، له صبره کار اخلي او یا د درد ضد درمل کاروي .

کله چي موږ په انسانانو کي پر دې خبره بحث کوو نو له درد او جوړ بدن سره داعتدال مثالول یوه حتمي خبره ده الله ﷻ د عدل دپلي کولو په اړوند فرمایي : إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ [9]

ژباړه : بېله شکه الله ﷻ امر کوي په عدل کولو سره او نیکي کولو سره او په ور کړي سره خاوندانو دخپلوی ته او منع کوي له

[9] النحل سورت ۹۰ ایت

قبیحه کارونوڅخه پنددرکوي تاسي ته په دغو سره .((کابلی تفسیر))

د اعتدال د پرځای او ندازه کاروني په اړوند الله ﷻ انسانانو ته فرمایي چي باید پخلپله اندازه یې رعایت کړي :

اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنْثَى وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِمِقْدَارٍ [١٠]

تفسیر: چي نارینه دي که ښځینه ؟پوره دي که نیمگړي ؟ ښه دي که خراب ؟ وغیرذالک من الاحوال دغه الله ﷻ ته لا پخوا له تولده پوره ښکاره دي او ښه ور معلوم دي په هر هغه چي بار اخلي ، هره ښځه او هر چي کموي يې الله پاک په اراده ارحام یايې زیاتوي من حیث الاعضاء والعدد والمدة الخ ......))کابلی تفسیر .

الله ﷻ هم پر همدې بنسټ دانساني کرامت اړخ دانسانیت له پاره په کښي ټاکلی او فطري جوړښتونو کي نر او ښځي ته حق یو شان ور کړی :

[١٠] الرعد سورت ٨ایت

● که نارينه يا ښــځينه يو له دوئ دواړو څخه په نصــاب پوره ســـوې غلا وکړي يو شـــانته به حد پرجاري کېږي .

● د حد په جاري کولو سره که نارينه وي که ښځينه د حد په جاري کېدوغاښ په غاښ،غوږ په غوږ،ټپ په ټپ او...سره يو شانته پر عملي کېدونکي وي .

● که نارينه يا ښــځينه د زنا دجرم مرکب سي پر دواړو دحدودو دپلي کېدو عمليه پخپلو اصولو کي يو ډول ده .

● که نارينه پردی ښــځي ته په نه کتلو مکلف دی، ښځينه هم پردي ته په کتلو منع ده .

چي دلته دعدل په پام کي نيولو سر پر دواړه يو شـــانته پر پلي کېږي . خو په ځينو مواردو د هغوئ نارينه او ښــځينه جسمي او روحي توپيرونو پر بنسټ يې هريوه ته بيل امتيازات د هغوئ دقناعت او وړتيا په ملحوظ اســـلامي شريعت ټاکلي دي :

● نارينه له مړي څخه دميراث په لړ کي د تَرکې په وړلوکي دوې برخي حق لري. کـه ســـوال پـه دې کي وي چي

دنارينه حق ولي په ترکه کي دښـځي په پرتله دوه برابره دی ؟ نو جواب به يې داوي چي نارينه دځان تر څنګ، د اولاد ، خانمي نفقه پر غاړه لري ، ښــځينه په دې مکلفه نه ده چي دميړه، اولاد اوکورنۍ له پاره دي څه وګتي او نفقه دي ور برابره کړي

- بل خبره دا ده چي نارينه کېدای سي په ډېرو لږو مواردو کي په ترکه کي ميراث وړونکی سي ،ولي ښــځه دپلارو ، ورور، مېړه ، او ... په ترکه کي دميراث وړلو مســتحقه ده .چي په دې سره نظر ددوئ جوړښت سره اعتدال ثابت دی .

- که نـارينـه وښــځينـه تـه دممکنـه طلاق پـه ور کولوصلاحيت لري د اسلامي اصولو له نقطه نظره ښځه هم دا حق لري چي دنکاح تړلو پر وخت دخپلي خوښــي مهر ((ولور)) له خاونده وغواړي په دې صــورت سره دنارينه حق ممکن دی ډېروخت داسي نه پيښــېږي چي نارينه دي ښـځي طلاقي کړي وي ، لږ خلګ دي چي دمجبورتونو او ياهوســونو په پايله کي خپل دژوند ملګرې ((مېرمن)) طلاقوي ،ولي ښــځه حق لري تر څو ددې دخوښــي ولور تعين کړي اوکه دا په خپله خوښـه راضي نه وي نکاح يې صـورت نه سي نيولای چي دلته په دې موضـوع کي دښځي توافق حتمي او دنارينه دا ممکن دی.

- نارينه دکورنۍ دپرېښــو درېدلو له پاره تر کور د باندې د چارو سرته رســوونکی دی او ښــځينه دکور دننه نظام کنټرول کوونکې ده .

دا پورته اســتدلالونه موږ ته څرګ په لاس راکوي چې نارينه او ښــځينه دواړه په حقوقو کې سره مســاوي نه دي ،بلکې حقوق يې عدلاً سره برابرېږي اوکرامت ته يې يو شانته درنښت سته .

ټولنيز تړاو

دپورته يادو ســوو ســـاختارونو دلنډې پېژندنې په پايله کې روښـانه کېږي چې انســان يو ټولنيز موجود دی ، همدا انســانان يو لـه بلـه سره پـه يوه اړخ نـه ، پـه يوه اړخ کې سره منطقي تړاو لري هيڅ کله موږ دا ادعا نه سو کولای چې انسان دې په بشري جامعه کې بې تړاوه پـاتـه سي، بلکې ددوئ تر منځ دګډ ژونـد او نظـام دپرمختګ له پاره متفرق ډولونه ســته چې په عمومي ســاحو کې د بشـري ژوندانه له پاره دوې عمده پديدې ځيني اټکل کولای ســو ، چې يوه د فکري تړاو او بله يې دځان غوښتني پر محور را ګرځي :

ددې دواړو پدیدو تر منځ یو بله لاره هم سته چې دنیشنلېزم په نوم یادېږي ،د نیشنلیزم مفکوره تل دپورته یادو متضادو مفکورو تر منځ قرار پیدا کوي کله دفاشـــیزم لور ته کږه او کله دتیورئ یا عقیدې تر سـیور لاندي راسي ،په دې درو واړو کي چې په هره یوه غالبه ســوه ، انســـان ثابت قدمه پاته کوي په هماغه اندازه داحقیقتونه ورته روښانه کېږي چې دئ پر کوم لور روان دی .

که دفاشـــیزم په مفکوره پوري تړاو ولري یوازي هغه څوک ورته دمنني او قدر وړ وي چې دده مادي او دنیایي منافع ور سره شریکي وي دا ډول مفکوره یوازي پـه هغـه کســـانو کي ده تـه محبوبیت ور کوي چې دده ور سره لنډمهاله کار اوبار وي .

کله چې فکري ســـاحې ته داخلېږي یوازي هغه څه ورته دمنني وړ وي چې دئ فکرا یا عقیدتاً ور سره تړاو لري هغه خلگ ورتـه دقـدر او منني وړ وي چې دئ دیناً او مـذهباً ور سره اړیکي لري او هغه څوک ورته مخالف ښـــکاري چې دده دیني اوعقیدتي چاري ورسره نه مني .

کله چې دنیشـنلیزم مفکورې ته ځېرکېږو نو په دې صـورت کي یوازي هغه څوک ورتـه دقـدر وړ گرځي چې نژاداً ور سره تړاو

لري،کله چې يو مفکوروي هجوم پر را ځي نو دنيشنليزم په نظرکي نيونه ځان عقيده پال ښـــيي او کله چې دمنافعو خبره سي بيانو لنډو موقتي ګټو او دځاني دموقف له پاره هماغه لار نيسي .

په نيشـــنليزم کي محدود ســـياسي جغرافيوي خطونه ديوه مملکت په ســـطحه دتحفظ او ســـاتني وړ وي دســـاري په ډول دجرمني هيواد پـه ســـيـاسي جغرافيوي محـدوده کي اکثريـت عيســـويان او لږ نوراقليتونه دي چې داټول مجموعي وګړي ژوند کوي جرمنيان بلل کېږي ، دافغانستان استوګنان ټول مسلمانان دي خو خلګ په نړۍ کي دوئ دافغانانو په نوم يادوي .

کله چې کوم هيواد دګڼو دينو موجوديت ولري لکه د هند هيواد نو دا هم هغه دټولو متفرقو دينو پيروان چې په هند کي اوسي يوازي د هنديانو په نوم يادېږي او نور نړيوال هيوادونه هم همداسي وشـــميره چې دهغه مملکت په ســـياسي جغرافيه کي را ايســـار کســـان به په يوه ملت يادېږي خو دينونه او مذهبونه به يې مختلف وي يا به څو هيوادونه ديوه دين پيروان وي خو دعقيدتي چارو په پرتله يې ملي منافع ډېر ټينګي نيولي وي .

په عقيده کې فکري مفاهيم تر هرڅه مخکې دســـاتنې وړ وي تاکلې محدوده نه مني يوازي خپل هم فکره غواړي هر چيري چې وي او په فاشـــيزم کې شـــخصيــ منافع دهدف مرکزي نقطه تشکيلوي دا که اقتصادي پاوړتيا وي او که داقتدار لاسته راوړل .

په دې درو سرو پديدو کې دانســـان دښــه روزنې او پالنې له پاره ســټنډرډ او معياري اصـول اســماني دينونه دي چې په موقتي ډول د محمد رســـول الله ﷺ تر مخه دنورو پيغمبرانو او رســـولانو دينونه دهماغو وختونو له پاره او بيا دانتســاخ په پايله کې د اســلام دايمي دين تر قيامته پوري دانسان له پاره دنيکمرغۍ ستره وسيله ، تګلاره او هدف بلل کېږي .

دغو اســـماني دينونو چې دبشرــ دنيکمرغۍ لــه پــاره تر محمدي دين دمخه ماضي او بيا وروسـته پسيــ دمحمدي ﷺ دين له ماضي قريبه تر حال او اســتقبال پوري بشرـته ښــه اســاسـات او اوصول وضع او واضح کړيدي .

دنړۍ پر مخ دانسانانو تکثر او مخ پر ودې تګ ته الله ﷻ د دوئ تر منځ دګذارې کولو په موخه يو له بله دپېژندنې او تفکيک له پاره فرمايي :يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى

وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ[11]

ژباړه :اې کســـانو!موږپیدا کړاســـت موږ تاسي له نارینه اوښځینه څخه اومو ګرځولاست شعبې اوقبیلې چي یوله بله سره وپیژنئ په تحقیق سره ښه ستاسي دالله ﷻ په نزدهغه څوک دی چي تقوی کوي بیله شــکه الله ﷻ په هر څه پوه او خبر دی دپورته ایت کریمه حکمت انسانانو ته څه په لاس ور کوي ؟.

پــه دې خـاطر داسـلامي دیــن دمــنظم او سیســتماتیک رونــق او پرمختــګ پــه لــړ کــي دقبیلــو پــه چوکــاټ کــي عصـــبات،ذو الارحـــام،ذوالفروض تثبیـــت سي پـــه مـــیراث وړولواونســـلي پېژندنـــه سره دانســـاني ټکرمخنیـــوئ وسي او پـــه نـــــژادي ډول سره د(شـــــعوبا)دکلمې پـــــه ذکرکېـــــدودنورو حکمتونوترڅنــګ چــي داللــهﷻسره خونــدي دي دنژادونــو تثبیـــــت وسي یقینـــــاً همـــــدا اوس دنـــــړۍ پـــــرمخ د((تور،سپین،ژړ،ســـور او ســـامي نـــژاد)) دخپلـــو نـــژادي خاصیتونو پـه لـړ کـي یو لـه بلـه سره شـناخت لـري خـدای ﷻ ددې پېژنـد طرحـه انسـانانو تـه پـه پورتـه ایت کریمـه کـي بیـان

[11]الحجرات

كــړې ،خوځپــل اللــه ﷻ تــه دهغــه معيــار لرونكــئ كــس ددرنښــت وړ دى چــي لــه اللــه ﷻ وبېرېــدى او ټــول هغــه شرايــط او مناســک يــې پــر ځــان پــلي كــړي چــي اللــه ﷻ دمعيــاري انســان پــه جوړيــدو داســلامي ديــن پــه اساســاتو كــي ټاكلي دي .

١: پـه پړاوي ډول د٤ اســماني كتـابونو نزول : دبشرــ دپيدايښت څخه مخكي الله ﷻ ملايكو ته خپله اراده څرګنده كړه او ورتـه ديې فرمـايـل چي زه دمځكي پرمخ دخليفـه ټـاكونكى يم دهمدې ارادې په مصداق يې ادم (عليه السلام) پيدا كړ او بيا يې پر مځكه دبشر دتنسـل مبدا هم له همدې ادم (عليه السلامه ) را پيـل كړه، وروســتـه يې ادم (ع) دخپلي مخكنى ادعـا لـه مخي دمځكي خليفه كړ ور سره ترڅنګ يې دانســاني نســل پلار او دهغوئ ديولارښود رهبر په توګه په پيغمبرى مبعوث كړ .

هغه ښېله شـكه همدا مسـئوليت پر ځان ومانه چي په عملي ډګر كښــي يې دخپلي او لادې نســل وخداى جل جلاله ته په بندګي را دعوت كړ تر څو د الله ﷻ او ادم (عليه السلام) دبدنيتي مخالف (( شيطان ))دتوطئو ښكار نه سي .

دا کړنه پخپله دعبادت او بشر پالني په مفهوم دانسانانو له پاره یاده سوه چې له همدې ځایه الله ﷻ دخپل خلیفه په ګمارنه دبشرپالني په مفهوم داړیکو نظام دانسانانو تر منځ جوړکړ.

دوئ ته یې د سمون او نېکمرغۍ دلاري دتعقیب په موخه پر بېلابېلو پیغمبرانو په تدریجي ډول ۱۰۰ صحیفې را نازلي کړې او داصحیفې ځکه مختلفي وې چې انسان په تدریجي تکامل سره دژوند او عبادت کولو طرز زده کړي: إِنَّ هَذَا لَفِي الصُّحُفِ الْأُولَى (۱۸) صُحُفِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى [۱۲]

ژباړه :په تحقیق سره بریالي سول هغه خلګ چې ځان یې پاک کړ او یاد یې کړ نوم درب خپل نو لمونځ یې وکړ ،بلکي تاسي خوښوی ژوند ددنیا او اخرت غوره او تل پاتي دی بېشکه خاماخا په صحیفو لمړنیو کي دي صحیفې دابراهیم او دموسي .

دمځکي پرمخ دانساني او بشري تدریجي ډېرښت او زوکړه دهغوئ د نفوسو دډېرښت لامل سوه ددې ډېرښت دمنظم بهیر دپر مخ بېولو او ټکر دمخنیوي په موخه یې له ادم (علیه السلامه ) تر رسول مقبول ﷺ پوري دهغوئ دسمبالتیا ، نظم ، اداري ،

[۱۲] سورت الاعلي

مشرتوب او مادون توب اومتقابل احترام له پاره دصحیفو تر څنگ پر داؤد (علیه السلام) زبور را نازل سو،او دتعمیل په موخه یې هغه ته دحکومت کولو امر ورته وکړ:لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَنْصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ [13]

دمظلومانو ددفاع په موخه يې هغه ته دساینسي اکتشاف لمړئ څرک په لاس ورکړ،اوسپنه يې په ویلي کړه،دزماني پړاونواو داؤد او دهغه دزوئ سلیمان (علیم السلام) تر وفات وروسته داؤدي پیروانو دقانون څخه دمخ اوونښتون او شخصي تفوق په عملي کولو خپل مسیر بدل کړ،انحرافات يې پیل کړل دا کړني ددوئ دگمراهی سبب وگرځېدي،بیا الله ﷻ حق ته دهغوئ دراگرځېدو له پاره پرموسي (علیه السلام ) تورات را نازل کړاودهمدې اولوالعزم پیغمبر په لېږد يې دبشر پالني اوامر صادرکړل چي ترمخکني

[13] سورت الحدید

هغه څه سـخت او دانظباط لرونکي ول . ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَى وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُبِينٍ [14]

ژباړه : او خاماخا موږ موسي (ع) او هارون (ع) ته پريکړه کوونکی کتاب ور کړ چي پرهيزگاران گټه ځيني واخلي ، هغه کسان چي په غيبو له خپل رب څخه بېرېږي دقيامت له بيري په لړزه وي .

د تورات څخه دخلگو او هغه وخت دامت تدريجي ســوړ والی او پرمځکه بانـدي ديهودو لخوا دخدای دکورنۍ دغړيتوب (اهل الله) توب ادعا او د فاشيزم په مفکوره دمځکي پر مخ تر ټولو انســانانو ځانونه په هرڅه کي مقدم بلل ، ځانونه سرداران او دنړۍ نورولســونه دځانونو دغلامانوپه بللو سره دهغوئ دتگلاري دمســير بدلون بيا ددې لامل ســو او الله ﷻ دتورات دکامل په موخه پر عسيـ (عليه الســلام) انجيل را نازل کړ، د عسيـ (عليه الســلام) اسمان ته تر ختلو وروسته بيا د عيسويانو سر کښ عالم ((پولس)) لخواد(تثليث) خدای ، عسيـــ او مريم يو گڼل ، يا عسيـــ (عليه

[14] سورت المؤمنون

السـلام) دخداى زوئ گڼل مفكوره په انجيل او (cretinism) كي ور گډه كړه ، بيا دبشري ټولني دانحراف لامل سوه .

كله چي دسرداری پر سر دعيسيـ (عليه السلام) دحواريونو او يهودي راهبانو تر منځ دمذهبي مشرتابه پر سر ټكر اوج تر ورسيد او بشري جامعې پر څو برخو دويشني په موخه دخپلو منافعو دساتني په موخه موقفونه ونيول .

دا ددې لامل سول چي په ازل كي دټاكلي پيغمبر او تلپاتي دين نزول صورت ونيسيـ او دقرانكريم دنزول له پاره اساساً زمينه برابره سوه او وروستئ منهاج او بشپړ قانون ((قرانكريم))پر محمد ﷺ دهر راز ستونزو دمخنيوي او بشري ټولني دنور پرمختگ نسخه سوه ،چي دا پخپله دبشرپالني اساسي وهاج او ډېوه بلله كېږي .

په دې پورته يادَونو سره دا څرگندېږي چي دعقيدتي ترميم تر څنگ په سالمه لاره كي يو او بل ته دچوپړ په موخه انسانان اړ دي چي دسالمي پالني لاسونه يو او بل ته وركړي تر څو داسمان وروستني قانون په رڼا كي دمځكي پرمخ دانسان دنسل له پاره انسانيت حكمفرما سي .

همدا سې وسول دصدر اسلام په دوره کې عقيدتې اهداف تعين ، عبادتې اساسات وټاکل سول ، دولتې او دخصوصې سکتور دپرمختګ طرز او بيت المال رامنځته ســو ، دپوځ او تجهيزاتو قانون، تعليم او پالنې علمې او عملې طرز او تفکر جوړ مساوات او اعتدال رويکار او مدنې ژوند ته نوئ رنګ ورکول سو .په لمړې ځل نورو غير اسلامې واکمنيو ته داسلام د دعوت په موخه او دمځکې پر مخ ديوه بشرې نظام او ټول بشريت ته ديوه عقيدې دپيروئ په نوم دورور ګلوې دعوت دســفيران ولېږل ســول او د ديپلوماتيکو روشونو په کارولو سره مينه،نظم،درنښت او هماهنګې پرکارسول .

٢په فردې ډول : په انفرادې حالت کې هم داســلام په اساساتو کې دبشرپالنه وجود لرې هغه فردې اساس چې په ټولنه کې ديوه سالم شخصيت په توګه را منځته کېږې دانسان مطرح کېدل ددې لامل کېږې چې دنومورې له ادارې او ســالم نقش څخه ټولنه متاءثره سې چې دا پخپله په ټولنه کې دسم سمکې په رامنځته کېدو اړوند دبشرـ له پاره پالنه را منځته کوې او بشرـ دې جوړوې چې تر منځ يې له انفرادې حالت څخه ټولنيز حالت را منځته کوې .

په دې اړوند الله ﷻ پخپل سپېڅلي کلام کي فرمايي :
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُون [15]

ژباړه : اې مؤمنانو ! ولي هغه څه واياست چي نه يې کوئ

که ددې ايت کريمه تل ته ســـړئ ځېر سي نو انســـان دې متوجه کوي چي دځان دپالني له پاره هغه څه وکړي چي دئ په مشروع اړخ کي وايي ،په هغه سره ثابت قدمه کېږي او نورو نسلونو ته داخلاقو او کړو وړو سيمبول جوړېږي .

دځان دمثبت پالني په لړ کي موږ کره او روڼ سند پخپله د رسول الله ﷺ شخصيت مثال راوړو ،هغه څه چي به هغه ﷺ تولنه په مخاطبوله لمړئ يې پر ځان پلي کړي وه همدا لامل وو دهغه هره خبره دکاڼي کرښه وه ، او دده ﷺ پر اصحابو(رضي الله عنهم) سل په سلو ١٠٠% کي اغيزه کول ، او هغوئ پخپله پلي کول دا پخپله درســـول الله ﷺ دځان پالني مثبت فردي روش وو چي مســلمانان يې په تقليد پسې ځي ، په دې اړوند د رســول الله ﷺ کره حديث دی چي هر يو مســـلمان يې په انفرادي ډول چوپان بللئ دی او بيا يې دهغه دانفراديت او چوپانۍ دمســـئوليت او

[15] سورت الصف

صــلاحيت په ســاحه كي نور هم راښــكېل كړي دي .تر دې لوړه خبره لا داده چي دځان پالني فكري اســتقرار او فردي مســئوليت په چوكاټ يې په انفرادي ډول هر مسلمان دقرانكريم دنصوصو په لړ كي په پنځه وخته لمونځ امركړيدي چي ځان ته له اوره نجات وركړي اوهم دالله ﷻ په وړاندي دبندگۍ سرخم كړي .

۳: په كورني ډول : دكورنۍ په ســيســتم كي چي په اوســنيو وختونو كي پـه غربي ټولنـه كي دكوم كورني نظـام نـه موجوديت ددې لامل دی چي دپلار ، مور ، خور ، ورور ، زوئ ، لور ، اكا ، ماما او ...دشخصيتونو تر منځ دميني محبت اړيكو ، ناستي پاستي تفكيك نه سي كېدلای .

پلار اومور يې پـه زوړوالي كـي ددولـت لـه غاړي وي ، دمېړه حق په Boy friend او دماندينې حق په Girl friend خوړل كېږي كورنۍ نظام متزلزل او كړانده وي ، عاطفه وجود نه لري هر يو غړی يې دژوند دډېرو امكاناتو سره ـــــــ سره په فكري كشـــماكشـــونواخته او رواني تكاليف گالي ددې ټول خوارځواكو اوژر شلېدونكوكورنيوتړاوونو په اړوندالله ﷻ **فرمايي** مَثَلُ الَّـذِينَ اتَّخَـذُوا مِنْ دُونِ اللَّـهِ أَوْلِيَـاءَ كَمَثَـلِ الْعَنْكَبُوتِ

اتَّخَـذَتْ بَيْتًـا وَإِنَّ أَوْهَنَ الْبُيُوتِ لَبَيْـتُ الْعَنْكَبُوتِ لَوْ كَـانُوا يَعْلَمُونَ [16]

ژباړه : کوم کســـانو چي له خدای ﷻ پرته دوســـتان نيولي دي ، دهغوئ مثال دغښي په شـــان دی ، چي خپل ځانته کور جوړوي ،او له ټولو کورونو څخه کمزورئ کور دغښي دی .کاشکي چي دغه خلگ په دې خبره پوهېدلای .

په پايله کي  په خودکُشيْ لاس پوري او ځيني له دې مادي نعماتو څخه په ډک ژوند کي ناخوښ وي ،ولي داسلام داساسي او معياري اصولو په نظر کي نيولو سره دسلسله مراتبو په لړ کي دځو تنو يو کورنئ نظام داسي تشـــکيل کړی وي چي پلار دکورنئ په دباندنئ او دننئ ساحه کي داصـلي مخکښ او مسـئول ، مور په کورنئ کي دـــــ دننيو چارو دمسئولي او کورني نظام دکنترول په موخه دنده مخ ته بيايي ، نور دکور غړي يې د پر ســـونلو غوندي تمثال وي ، پرخپل ځای متقابل صـــميميت ، احترام او يو له بله

[16] سورت العنکبوت٤١ايت

پالنه را منځته کوي چي پخپله داسلام په اساساتو کي داسي يو طرز العمل دکورني نظام دمنځته راتگ سبب کېږي .

ځکه دکورنيو جوړښت پخپله داساساتو يو روڼ مثال دی چي دځو تنو دپالني لامل کېږي . ددې پالني له پاره په کور دننه دپردي او خپل له پاره ټاکلي شرايط په نظرکي نيول سوي دبېلگي په توگه دقرانکريم لاندي ايت کريمه لولو : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ (٢٧) فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَى لَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ (٢٨) لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ [١٧]

ژباړه : اې مؤمنانو له خپلو کورونو پرته نورو کورونو ته تر هغو مه ننوزي تر څو اجازه يې تر لاسه او پراوسېدونکو يې سلام ووایاست دا ستاسي له پاره ډېر غوره دي ښايي تاسي له دې څخه پند واخلئ .نو که مو څوک هلته پيدا نه کړل تر څو چي اجازه درته نه وي سوې مه ور ننوزئ ، او که درته وويل سول چي بيرته وگرځئ

[١٧] سورت النور

، نو وګرځئ ! بیرته ګرځېدل درته ډېره پاکه کړنلاره ده او الله ستاسي په کړنو ډېر ښه پوهېږئ .

٤: په کلیوالي ډول : په دې اړوند داصــحابو (رضي الله عنهم) روایات دي چي وایي : کله چي به رسـول الله ﷺ دګاونډي حق بیـا نـاوه موږ پر دې وېرېـدلو چي دکور پـه حق کي یې را شریکان نه کړي ) په کلیوالي ســطحه په اســلام کي دبشرــپالنه دومره اړینه ده چي که نامســـلمان هم زموږ سره په ګاونډ کي وي داســـلامي معیارونو په نظرکي نیولو سره ژوند وکړي باید داسي روش ور سره وسي چي هغه دا احســاس کړي په اســلام کي دهر چا له پاره خپل منزلت او حق دخپل اســتحقاق په اندازه ټاکلی دی ،که پخپله دمســـلمانانو تر منځ دا پالنه مد نظر ونیوله سي نو دلته خوپه ورځ کي دځو ځلي خپراوي په موخه خپله هغه پنځه وخته په جماعت لمونځ د بشرـ پالني یوه نه پرشــاکېدونکی طرز العمل دی تر څو له یوه اړخه د خدای او بندګانو تر منځ د راز او نیاز اړیکه قایمه سي او ور سره په بل اړخ کي په دسته جمعي ډول یوه ذات ته په سرخمی سره دسـیمي کسـان ټول یو ډول الله ﷻ ته تسلیم وي .

په دريم اړخ کي ټول بندګان دجماعت دهمدې لمانځه په تر سره کېدو سره پنځه وخته له يوه او بل حال،احوال او کړو وړو څخه خبر سي او سره وپالي .

٥: په ســيميز ډول :دســيمي په ســطحه هم الله ﷻ د سرخمې په موخه دجمعې لمونځ دبشرــ پالني اســاسي رکن ګرځولی دی او همدا رکن دی چي ديوې او بلي سيمي مسلمانان يو له بله سره خبرېږي چي دســتونزو پر وخت کومک سره کوي دخوښــي پروخت مبارکي سره ور کوي ، دتصــميم پر وخت لاري چاري سنجوي دا پخپله دبشرپالني سيميزه پديده ده.

ددې تړاو په ملحوظ دلمانځه وجوب يې دنورو حِکمتونو څخه دايو حکمت روښــانه کوي چي خلګ بايد سره وويني او دخطبې له اورېدو سره خرڅلاؤ او رانيول منع سوي دي .

٦: په نړيوال ډول : په نړيوال ډول د بشرـ پالني په اړوند د نړيوال نظام په توګه اسلام خپل ځان ته دصدر الاسلام ددورې طرز العمل لري چي معاصري جوړيدونکي سياسي پروسې يې په ملي او نړواله ډول ســارئ په دولتي نظامونو کي نه سي را وړاندي کولای ددې خبري دســپيناوي له پاره موږ يو کره مثال په يوه

فرض کړل ســـوي پروژه کي دپلي کېدو او کنترول په لړ کي لرو دســـاري په ډول ؛ موږ غواړو يو پلان پلی کړو نو هر څه چي په پروژيي ډول له صـــفره (۰) راپيل کوو تر څو چي پروژه کي مو پوره دکاري گراف درجه (۳٦۰) درجو ته رســـېږي ،ولي کله چي دهغې پروژي ارزونه يا کنترول کوو او يا دپايلي تر څنگ يې نيمگړتياوي را څرگنـدوو ، ددې لـه پـاره يې نو موږ د(۳٦۰) درجو څخـه بيرتـه پلټنـه تر (۰) پوري دســـمون په موخه کوو ، هر ځای چي کومـه خامي يا تېروتنـه وي پـه ســـمېدو يې لاس پـه کـار کېږو ، تر څو وکولای ســـو له دې لاري ځانته د تر ميم تکئ ولټوو سره تر دې چي دمعـاصر اداري (Management) لرونکي کســـان دا ډول دخپلو کـاري کړنو لـه پـاره معـاصر تـاکتيکونـه بولي ولي ديو کره ثبوت په توگه د رسـول الله ﷺ ژوند يو ښـه سـارئ بللای سـو .هغه ديو نړيوال بشري نظام دجوړېدو له پاره له خپله ځانه عملي برنامه را شروع کړه ، الهي ارشـــادات يې لمړئ پرځان ، بيا پر کورنی، بيا پر ټبر، بيا دمکې او مدينې پراوســـېدونکو او په وروســـته پســـې يې پرټولو هغو خلگو پلي کړل چي پرده يې ايمان راوړ.

د رســـول الله (صـــلي الله عليه وســـلم) دا ډول طرز العمل او دخپلو ملگرو دپالني په لړ کي دنړی يو پر درې برخه (دفرانســـې

دالف له غرونو ، دافریقاتر مرکز او شماله ، له هغه ځایه څخه نیولې دهند تر ډهلي ، له هغه ځایه څخه داندونیزیا دجایاپوياتر جزیرې ، له هغه ځایه نیولې تر چیچنیا یا روسي ققفازه او له دې ځایه بیرته دالف تر غرونو) داسي متحده سوه چي دصدر اسلام له دورې نیولي دترکي عثماني خلافت تر ســقوط پوري په ټوله نړۍ کي داسـلام ددین پیروان دمسـلمانانو په نوم یادېدل او داسـلامي نړۍ په قلمرو کي دپېژندني یو شِــفر وو چي هغه د رســول الله ﷺ د سـیرت څخه په پیروي او دهغه دسـپېڅلي شریعت په چوکاټ کي دژوند کولو طرز العمل وو.

د مسلمان او غیر مسلمان ترمنځ په اسلامي او بشري نړۍ کي ځانګړي قوانینو دپروتوکولونو حیثیت درلود .

تر څنګ يې دهمدې قوانینو په رڼا کي انسانان د انساني او بشري کراماتو په لړکي د یواو بل پالني ته متوجه وه په معنوي اړخ د مریضـانو پوښـتنه هغوئ ته دروحي سـکون ، په مادي اړخ کي د زکات ، سرسـايې او خیرات په ور کولو د بېوزلانو لاسـنیوی د پالني هغي وسیلې دي چي دنړۍ پر مخ به بشر کي هیڅ یو مسکین نه سي پیدا کېدلای او ددې ټولو سره ـــ سره دیوه مشترک ارتباط له پاره خو حج دنړیوالي اړیکي یو څرګند او ثبوت بللای سو .

**دنړۍ له گوټ گوټ څخه چې کوم مسلمان ددې فريضې دادايني له پاره دالهي هغو اوامرو را لاندي چې دوئ بايد فرضي وجيبې او سـنتي ډول پلي کړي راځي ، لاندي مفادات دنړيوال اسلامي تړاو يا (Islamic communication) په اړوند ټاکلي دي .**

- **دټولو هغو اموراتو تکرار او تمرين چې الله ﷻ له لوري په فردې ډول پر مسلمان مؤحد باندي دشرايطو په درلودلو سره فرض کړل سَوي ، تر څو دانسانيت تر منځ ددين له ابتدا بيا تر اخرت پوري پر ځای بقا ولري او نسل پر نسل کټ مټ تر سره سي .**
- **دنړۍ له هري سـيمي نماينده حاجيان دنړۍ هر گوټ مېشتو مسلمانانو له کيفيت او حالت څخه خبر سي .**
- **هر کال ديوې پراخې تجمع په جوړېدو سره ديوه مسلمان بلاک دپياوړتياتمرين او مانور مثال ور کړي .**

**پايله**

**ددې لنډي رسـالې پايله دا اخلو چې اسـلام دمعمولي شـعارونو دين نه دی چې په زنده باد او مرده باد سره په تودو احسـاسـاتو بدرگه او بيا په سي تمام سي، بلکي د ټاکلو**

**اهدافوپه درلودلو ، انسانيت ته په دنيا او اخرت کښې د نجات دين او دتګ‌لارو طرزالعملونو لرونکۍ نظام دی ،د اسلامي نړۍ د اوسنيو بحراني ځپو ستونزه په اسلام کښې نه ،بلکي دانسانانو لخوا يې دښې زده کړي ، قول او عمل نه پوراينه ده .اسلام نه يوازي داچي دمسلمانانو له پاره کاملاً دهوسايي يو پلان دی ،بلکي تر دې را لاندي دنړۍ پرمخ دنر ښځي،لوی ، کوچني، حيوان او نبات له پاره دپالني عميق اساسي بنسټ دی .**

**ځوک چي دې چوکاټ ته ځان ور اچوي له هر راز معنوي نېکمرغۍ ځخه به برخمن او د نړۍ پر مخ به په مادي ډول هيڅ مسکين او فقير ونه موندل سي، دنړۍ دسياسي رهبرۍ هسته پخپل واک ،اقتصاد او تمدن به يې په کنترول کي وي چي دا دسياست اساسي زربنا تشکيلوي او د روبنا له پاره يې ستراتيژي ټاکي .**

**دهغې ورځي په هيله چي نړيوال يې تر چتر لاندي خوږ ژوندولري**

## دليکوال لنډه پېژندنه

نوم :: نوراحمد ((قران مل))

دپلارنوم ::حاجي عبدالحميد ((کاکړ))

اصلي مېنه :: کندهار ښار ځلرمه ناحيه ((باميزو کوځه ))

دزوکړي مېنه:: کندهار ښار درېيمه ناحيه ((کاکړو کوځه))

اوسنۍ مېنه :: کندهار ښار لسمه ناحيه ((کارته معلمين))

زده کړي :: پـه١٣٨٢لمريزکـال دکنـدهـاردعـالي دارالمعـلمـين داجتماعياتوڅانگي دفراغت ترځنگ ديني اواداري زده کړي ـ کړي.

په روان ١٣٩٣ کال کې د کندهار پوهنتون،ښووني او روزني پوهنځی دانگليسي څانگي د ٣يم کال محصل.

<u>چاپ سوي اثار</u>

- ادبي ډېوه :: تذکرة الشعراء
- زما غوښتني :: نثري تحقيقي ليکنه
- اياغريبک پېژنئ :: نثري تحقيقي ليکنه
- ښکئ :: نثري تحقيقي ليکنه
- دغريبک خزانه :: نثري تحقيقي ليکنه
- داوښکو بهير :: آزاد او مقيد شعرونه
- خطاب ::مقيد شعرونه
- ديادونو ځولۍ :: ازاد او مقيد شعرونه
- خطوط واقلام اعلي :: ترتيب ،سمون او سريزه

- پښتو لنډۍ او غاړي :: ترتيب ،سمون او سريزه
- ستوري ستوري :: ترتيب ،سمون او سريزه
- تاند يادونه :: ترتيب ،سمون او سريزه
- زر وړانګه مجله ::پرله پسې شپږ ګڼي
- دپاړکو ډولۍ :: ترتيب ،سمون او سريزه
- لمرين کلئ :: دجاپان هيواد سفرنامه
- ريښتونئ استازئ ::دمحمد رسول الله(ص)سياسي ژوند
- مناجاتونه:: په پښتو ادب کي لمړئ مرتبه قافيه
- پلان ::دپلان اړوند ((تدريسي)) کتاب
- دبشري سرچينې::دبشري منابعواړوند ((تدريسي))کتاب
- او همدا اثر